## د مضامینو فهرست

☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆☆

مزید ځمونږه نوي کتابونه هُم رروان دی ان شاء الله، مثلاً«غیرمقلّدین او بریلویان بهائی بهائی،توضیحاتِ عباراتِ اکابر،دروسِ مناظره، او ځمونږه ماهنامه ترجمانِ احناف هُم په مطالعه کښې یاد ساتي، او ځمونږه د کتاب که سوک بل ژبې ته ترجمه کول غواړی بغیر ترمیم و اضافه نه، نو هغوی ته بالکل اجازت دي،البته مونږ سره دی مشوری دپاره ضرور رابطه اوکړي.
عبدالرحمن عابد عفی عنه پشاور پاکستان 0333:3300274

## ... مقدّمه ...

اِنّ الْحَمْدَلِلّٰه نحمده ونستعینه ونستغفره و نعوذ بالله من شرور انفسنا ومن سَیأت اعمالَنا من یهده الله فلامضل له ومن یضلل فلاهادی له وأشهد أن لااله الاّ الله وأشهدان محمداً عبده ورسوله!

**اما بعد!** ناظرینِ کرام! کله چه انګریز د مسلمانانو په صف کښې انتشار او فساد جوړولو دپاره او د دوی په مینځ کښې اتفاق ختمولو دپاره کوششونه شروع کړل او سوچونه‌اوجدوجهد ئې شروع کړل، نو په هغې کښې ئې یو داسې جماعت تیار کړو چه د مسلمانانو په جامه کښې د انګریزانو به پورا پورا اطاعت کوی، لکه چه خپله ددوی د ډلی مشر نواب صدیق حسن غیرمقلّد د خپل آقا انګریز متعلق لیکی چه:
«اورحاکموں کی اطاعت اوررئیسوں کاانقیادانکی ملت میں سب واجبوں سے بڑا واجب هے» (ترجمان وهابیه صفحه ۲۹)
ترجمه: د حاکمانو(انګریزانو،ناقل)اطاعت او د رئیسانو په ملت کښې د هغوی اتباع کول په ټولو واجباتو کښې لوئې واجب دې.
شاباش ! دصحابوکرامو رضی الله عنهم اتباع نشته خودانګریزانو اتباع صرف واجب نه بلکه دټولو واجباتوکښې لوئې واجب(!!!) ؟؟؟

او بیاورپسې لیکی چه:
«بحثییت موجوده پرسرکارانگریزی کی مخالفت کوقطعًاناجائزلکھاھے »(ایضًاصفحه۴۸)
ترجمه:بحیثیت موجوده سرکار انګریزمخالفت کول قطعًا ناجائز دی.
نوروفاداری ئې هم ورسره ډیرزیاته کړې ده چه دلته کښی دا مختصرصفحات تفصیلی طور سره مونږ له اجازت نه راکوی، نو د دوی خپله کتابونه پرې ګواه دی مثلاً د غیرمقلدینو شیخ الاسلام ثناء الله امرتسری صاحب لیکی چه:
«سرکاری دفتروں میں اهلحدیث کووهابی لکھنے کی ممانعت»
اوبیاددې عنوان ماتحت ئې داخبره ذکرکړیده چه زمونږه داجماعت دانګریزانو نه په نوم د «اهلحدیث» سره په سن مورخه ۳دسمبر۱۸۸۹ء نمبر۱۷۵۸ کښی نامداره شوې دې اوصرف دجماعت نوم نه،بلکه دوی ته به القابات هم انګریزانوکیخودۀ لکه چه د غیرمقلدینو متعتمدعلیه شخصیت ابراهیم سیالکوټی صاحب دنذیرحسین دهلوی صاحب متعلق لیکی:
«حکومت کی طرف سے خطاب :شمس العلماء کاخطاب ملا”
(تاریخ اهلحدیث صفحه۴۷۸ )
او دا کوم شخصیت دې نوداهم اوګورې یو غیرمقلد مورّخ لیکی چه:
”علمائے اهلحدیث کاسلسله برصغیرمیں ان سے شروع هوتاهے”( چالیس علمائے اهلحدیث صفحه۲۸)
الغرض! دغه بدعی فرقه چه ځان ته اهلحدیث وائی انګریزانوپه تقلید کښی دغه فرقې ډیرخصوصیات دی چه دهغې نه به هغه خصوصیت منتخب کړو کوم چه زمونږه مطلوب او د کوم دپاره

مونږه چه قلم اوچت کړیدې هغه خصوصیت ئې دادې چه دوی
ځان ته دسنتومتبعین وائی اومخالفینوته دهرکاربانديې دبدعت
نسبت کوی اودا دعویٰ ئې دومره عامه کړه چه خپله په غټ
غټ بدعاتو کښی اخته دی خوبس هغه بدعات دغه
مبتدعینو(غیرمقلّدینو)ته اړوښکاری نه، او دا صرف ددوی عادت
نه دې،بلکه هرفرقه باطله په یو نوم باندې بې ځایه قبضه
واچوی نوداسې حیلې اوفریب نه کاراخلی، ځان ته بعض
نامرادخلق سُنّی وائی اوخپله ټول اعمال ئې بدعی وی،
همدغسې بعضې خائبین خلق ځان ته اهل بیت وائی خوداهل بیتو
سراسرخلاف کارکوی
همدغسې غیرمقلّدین په ظاهره کښی په خپلوخُلو باندې دبدعت
مذمّت ډیربیانوی نوبس ددوی داخیال دې چه دې خلقوته به
زمونږه اړوبدعات ښکاری نشی حاشاوکلاّ.
مونږه په راروان بحث کښی دنیا ته ښایو چه غیرمقلدین د
رضاخانیانو(بریلیانو) په شان بلکه دهغوی نه هم غټ بدعتیان
دی، او د دې فیصله په خپله منصفین قارئین اوکړی چه مونږه
په دې خپله دعویٰ کښی کوم حده پوره کامیاب شوې یو. بلکه
قارئین کرام به خپله هم دغیرمقلّدینو اکابرینونه حواله جات
ملاحظه کړی چه دوی خپله هُم اقرار کړې دې چه زمونږه په دې
بدعی مسلك غیرمقلّدیت کښی بدعت اوبدعتیان شته چه
منصفینوته به په فیصله کولو
کښی ډیره آسانی وی ان شآءالله۔
**تنبیه:** مونږه په دیکښی هغه حواله جات هُم بعض ذکرکړیدی چه هغوی
یومسئلې ته بدعت وائی همغه مسئله هُم د دوی په کور کښ هُم موندلې
کیږی، ګویا چه دوی په دې خپل قول سره مونږه الزاماً بدعتیان اوګرځول،

او څومره حواله جات چه مونږه قیدِ تحریر کښې راوستی دی، په دی
اکتفاء کوو مزیدحواله جات مونږه قصداً پریخوده هغه به بل ایډیشن کښی
ذکر کړو ان شآءالله الرحمن.....
اوداخبره هم قابل ذکر ده چه زمونږه هیچاسره ذاتی دشمنی
نشته،داکارصرف اوصرف دابطالِ باطل لپاره غیرمقلّدینو ته ښایو چه
راشې یا خو دغه بدعات ختم کړې اویائې په دلائل شرعیه محکمه
وؤسره ئې ثابت کړې،ورنه بیا د هغې په قائلینو باندې دابتداع فتوی
مه لګوی چه خپله یو کار کوی او هغه جائز هم ګنړې نو که هغه
کارنورڅوك اوکړی نو هغوی بدعت اوکړه اوتاسوچه ئې اوکړې نو هغه
به جائز وی داکوم انصاف دې---؟؟
اوغیرمقلدین دې ځان په دې نه خلاصوی چه څه ئې نه منم، لکه چه دا د
دوی میراثی عادت دې زمونږه مقصد هغه کسان مبتدعین ظاهرول دی
چه کوم خلق ځان ته "اهلحدیث" یا "غیرمقلّد" وائی اویاورته د بل چا
دطرفنه دغه القابات او اوصاف وئیلې شوې وی، اوکه نه منلوخبره
باندې فیصله اوکړی شی نو غیرمقلدین خو صحابه بلکه خپله پیغمبر
پاكﷺبلکه...بلکه د خدائې پاك خبره هم نه منی لاپاتی ئې مشران!!!

**دبدعت اوبدعتی مذمت:** په اسلام کښ د بدعت او بدعت
مرتکب یعنی دبدعتی سخت قسم مذمت بیان شوې دې، او
خلافِ سنت عمل الله ته هیڅ کله قابل قبول نه دې د نبی
کریمﷺ ارشادپاك دې"مَنْ عَمِلَ عَمَلاً لَيْسَ عَلَيْهِ اَمْرُنَافَهُوَ رَدٌّ
"(صحيح مسلم۲/۱۳۷ ،بَابُ كَرَاهَةِ قَضَاءِ الْقَاضِي وَهُوَ غَضْبَانُ)
چه کوم کس داسې عمل اوکړی چه دهغې حکم مونږه نه وؤ
کړې نودهغې هغه عمل مردوددې.
معلومه شوه چه دبدعت او د سنت میزان شریعت دې، که د چا
ذهن یئ ډیرښه منی اوښائسته علم یئ ګنړې اوپه خوله ډیرځان

ته د احادیثو او د سنتو تابعداروائی یعنی ځان ته" اهل حدیث"
یا "اهل السنة" وائی خوچه د شریعت د مرضی او موافق نه
وی نو د دوی دغه عمل لره هیڅ اعتبارنه وی، دوی لره چه
کوم عمل ښائسته ښکاری نو دا به هُم ورله شیطان ښائسته
کړې وی « وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ اَعْمَالَهُمْ" دوی به ځان هم
دومره په عذاب کړې اومحنت به اوکړی یعنی په خپل ګمان
کښی به نیك اعمال اوکړی خو چه دشریعت خلاف وی نوهغه
عمل اومحنت يئ برباد دې، اودالله درضاپه ځائې الله پاك په
ځان باندې غصه کول غواړی العیاذبالله، اوصرف عمل يئ
بربادنه بلکه الله به ترینه هم ناراض وی اوصرف آخرت کښ يئ
عذاب نه ،بلکه دنیاکښ پرې هم عذاب شروع شی د صالحینو
ورسره بغض وکینه پیداشی اللهم احفظنا.
امام ترمذیؒ(المتوفّی:۲۷۹ھ) په خپل سنن کښی بسندٍصحیح حدیث
ذکر کړې دې چه نبی علیه الصلوة والسلام فرمائیلې دی:"فَمَنْ
اَحْدَثَ فِيْهَاحَدَثًااَوْاَوَى مُحْدِثًافَعَلَيْه لَعْنَةُ اللّٰه وَالْمَلاَئِكَة وَالنَّاسِ
اَجْمَعِيْنَ لاَيَقْبَلُ اللّٰهُ مِنْهُ يَوْمَّ الْقِيَامَةِ صَرْفًاوّلاَعَدْلاً"(تِرمَذی
جلدثانی صفحه ۳۳)
چه چا مدینه(یا هرځائې کښ،ناقل)یو بدعت کار اوکړۀ او یا
بدعتی لره يئ پناه ورکړه نوپه هغې باندې دی دالله لعنت، د
ملائکو او د ټولوخلقولعنت وی اوالله پاك به يئ د قیامت په
ورځ نه فرض قبلوی اونه نفل.
اوګورې محترمینو! صرف دبدعت نه ،اوصرف د بدعتی
مذمت هم نه بلکه که څوك د بدعتی لره څه قسمه پناه
ورکړه هغه هم په دغه وعید کښی داخل دې العیاذبالله.

هغه خلق دې سوچ اوکړی چه د مبتدعینو بالخصوص د دې زمانې فرقه اهلحدیث دفاع کوی یا یئ ورسره څه قسم محبت وی العیاذبالله، هغه دې داحدیث باربار اوګوری او دزړهٔ نه دې قوم پرستی اودشریعت خلاف محبت لرې کړی ځکه حدیث پاك کښ راځی چه:"اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ"
[صحیح البخاری، بَابُ عَلاَمَةِ حُبِّ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ]
سړې به دهغه چاسره راپاسی (یعنی دهغه خلقوسره به یئ حشرکیږی)چه دچاسره یئ محبت وی.
دا حدیث ډیرقابل غور دې داحدیث ډیرډیر کتل او بیا پری عمل کول پکاردې
او دغسې امام ترمذیؒ بل حدیث ذکر کړې دې چه نافع رحمه الله فرمائی چه: اَنَّ ابْنَ عُمَرَجَائَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ:اِنَّ فُلاَنًا یَقْرَأُ عَلَیْكَ السَّلاَمَ فَقَالَ اِنَّهُ بَلَغَنِیْ أَنَّهُ قَدْاَحْدَثَ فَاِنْ كَانَ قَدْأَحْدَثَ فَلاَتَقْرِئْهُ مِنِّی السَّلاَمَ "(ترمذی جلدثانی صفحه ۳۷و۳۸) (سندصحیح)
چه عبدالله بن عمرؓ لره یوکس راغې ورته ئې اووئیل چه په تا باندې فلانکی سړی سلام وائی نو عبدالله بن عمرؓ اوفرمائیل چه ماته داسې خبر رارسیدلې دې چه دغه کس په دین کښ یو نوې خبره (بدعت) کړې ده، که دغسې یئ (واقعی)کړې وی نو زما د طرفنه پی سلام مه وایه
سبحان الله! دبدعتی دومره مَذمت چه سلام قدرې هم مه وایه یعنی دومره دالله د خاطره بُغض، دیته وائی دالله دپاره محبت اودشمنی ....
او دغسې چه څوك دبدعتی قدراحترام کوی نو د هغې متعلق هم نبی پاكﷺ سخت وعید بیان کړې دې، ددې دپاره چه دغه بدعتی دخپل ذهن او د شیطان چه ورته کوم عمل ښائسته کړې دې او د ریالونو یا دنورکوم لالچ د وجې نه یئ چه کوم

بدعت ایجادکړېدې هغه بدعت پریدی، دنبی علیه الصّلوة والسلام نه په صحیح سند سره امام ابوبکرمحمدبن الحسین الآجُریؒ(المتوفّی:۳٦۰ھ)روایت نقل کړې دې:"مَنْ وَقّرَصَاحِبَ بِدْعَةٍ فَقَدْاَعَانَ عَلَی هَدْمِ الاْسْلاَمِ"
( الشریعة ص۹٦۲)
چه کوم کس د بدعتی عزت اوکړه نو هغه(هُم) د اسلام په غورزولو کښی(ورسره) مدد اوکړه.
او دغسې ابن عمرؓ متعلق بل حدیث کښ راځی چه:
مجاهدرحمه الله فرمائی چه ځه ابن عمرؓسره ووم چه یو کس د ماسپخین یا د مازیګر په اذان کښی تثویب اوکړۀ نو ابن عمرؓ هغه مؤذن ته اوفرمائیل چه: "اُخْرُجْ بِنَافَاِنّ هَذِهِ بِدْعَةٌ"(ابوداؤدشریف)
**الغرض!** د دې تمهید نه مونږ ته دبدعت اودبدعتی مذمّت معلوم شو،اُوس چه د کوم کس په الله او د هغه په رسولﷺ ایمان وی نوهغه به ضرور د بدعت نه بیزاره کیږی بلکه که خپله بدعتی نه وی خو د هغه مینه محبت بدعتیانو سره وی او یا ورپسې همیشه مونځونه کوی اویا ورسره نور داسې غیرضروری میل جول کوی نو هغه دې هُم د تیرشوی احادیثونه عبرت واخلی او دغه عیبونه دې دځان نه اوباسی، مونږه راتلونکی بحث کښی عوام اوناخبره او اُوده خلقو ته داښایو چه ځان ته ویونکی اهلحدیث حضرات چه کوم یادولې شی په "لامذهب"یا "وهابی" اویا دوی چه ځان ته خپله" اهلحدیث" وائی، د دوی په فرقه اومسلك کښی څومره قدربدعات دی، دوی خو په ځان باندې د"اهل حدیث" څادر اچولې دې لیکن په دغه څادرکښی دوی دومره بدعات کوی چه بریلیان یئ شاته

پریخی دی، اوداسې قدربدعات کوی چه خپله هم دوی ګویاشوې دی اواقرارکوی چه واقعی زمونږه په مسلك کښی بدعات اومبتدعین شته، چه دهغې مکمل ثبوت آئنده صفحاتوکښ به ملاحظه کړې ان شاء الله الرحمن.
اود بریلیانو نه د دوی بدعات سنګین او شدیدقسم دی، زهٔ خپل الله پاك ګواه جوړوم چه دا خبره بلاتعصّب وبلا ذاتی دشمنې کوم چه داخبره بالکل سوفیصدحقه ده، او ماسره به هغه خلق هم تائید علی وجه البصیرت کوی چه کوم خلق دفرقه اهلحدیث کتابونه یئ مطالعه کړې وی .
بریلیان که یوطرفته په بدعاتو کښ ملبوس دی نو هغوی دخپل بدعاتولپاره استدلال هم نشی کولې، صراحتًاتصریح کوی چه داپه شریعت کښ نه وؤ،بلکه روستوزمانې کښی موجد شوې دی مثلاً بریلیانو د اذان په وخت کښی"الصلوة والسلام علیک یا رسول الله" او دغسې په خپل بدعی طریقې سره میلادونه کوی وغیره چه دوی خپله اقرارکوی چه دا روستو پیدا شوې دی، لیکن افسوس صد افسوس په غیرمقلّدینو باندې! چه دا خپل بدعاتو ته بدعت هُم نه وائی اوبیالا دظُلم دپاسه ظلم په فاسد استدلال سره دقرآن وحدیث نه اخذ هُم کوی ددی بدعاتو لپاره چه هغه استدلالات دپوره امت مسلمه په وهم ګمان کښ هم نه وی تیرشوې!!!
ددې وجې نه مونږه غیرمقلّدینو ته د خیرخواهې په نیت دعوت ورکووچه ځان ته دسنت ټهکیدران مه ګڼړي
بلکه دغفلت خوب نه پاسې اوتعصّب او د ضد نه زړونه خالی کړې لکه څرنګه چه تاسوکښ علی وجه الاتم تعصّب پروت دې اوپه بدعاتوکښ ډوب یئ. لګ زمونږ معروضات ښه په یخ زړهٔ

بغیر د تعصّب نه اولولې او دې خپل غیرمقلدیت بدونِ اجتهاد غوندې بدعی مسلك ته خیرآباد اووائې، اودغه معروضات مونږ ستاسو د کور په حوالو سره هُم مزیّن کړې دی الحمدللّٰه. دې دپاره چه ستاسو د انکارځه ګنجائش پاتې نشی اوکه دروغ یئ ګنړې نو بیا هُم درته دا سوداګرانه پریوځی چه تاسوبه خپل غیرمقلدین اکابرین مشکوك کړې اوستاسومذهب بیا هُم نشی بچ کیدې خه به داوی چه په دین باندې دخپل بدعی اجتهاداتو په ځائې د اسلافو په راهنمائې اوتقلیدکښی عمل اوکړې او دغه عقائدِباطله نه توبه اوکاږې کوم چه دغیرمقلدین مسلك دوجې نه تاسو اختیارکړیدی چه دهغې پورا تفصیل زمونږه کتاب "دغیرمقلدینوګمراه کن عقائد"کښی اوګورې بس دغه زمونږه دعوت وؤ اوتاسو اولوستل، نورمنل اونه منل زمونږپه طاقت کښی نشته هغه ستاسو په خپل اختیار کښ دی چه بیا صبا له دقیامت په ورځ اونه وائې چه مونږه خودغیرمقلدیت بدون اجتهادنقصان نا نه وؤخبر ------!

په آخره کښی داخبره لیکل ضرورګنړم چه کوم ځائې کښ زمونږه دقلم نه لفظ"غیرمقلد" اوځی نو د دې نه به مراد هغه فرقه اوډله وی چه کوم خلقوکښ د اجتهاد ماده هُم نه وی او بیا هُم تقلید دآئمه اربعوؒ نه کوی. او په کوم ځائې کښ چه مونږه "اهلحدیث" اولیکونو ددې نه به مراد محدّثین کرام رحمهم اللّٰه نه وی العیاذبالله! بلکه زمونږه ترینه مرادهغه خلق دی کوم چه بقول ثناءاللّٰه امرتسری غیرمقلداو عبدالمجید سوهدروی صاحب غیرمقلد "اهلحدیث" نوم ورله انګریزانوایخې وی(اهل حدیث کامذهب صفحه۱۰۲ وسیرت ثنائی صفحه۳۵۲)ځمونږه هغه خلق

مراد دی کوم چه بقول امین الله اهلحدیث نوم اوس خلقو د یوخاص تنظیم دپاره ایخې دې (الحق الصریح جلد۱)
ځمونږ ترینه دغه مُحدَثه فرقه مراد ده که دغه فرقه که حق قبول نه کړی لکه څرنګه چه ددوی عادتِ قدیمه دې چه دوی حق دسره قبلوی نه، الاّ بخرق العادة
نوکم ازکم------ کم ازکم داسې خلق خوبه راپیداشی کنه چه کوم دوی پسې مستقل مونځ کوی اویانیمګړې غیرمقلدین ترینه جوړشوې وی، دغفلت دخوب نه بهٔراپاسی اوددې علم به ورته اوشی.
او کوم غیرمقلّدینو ته که ځمونږه د تحریر نه خفګان اورسیږی نو هغوی ته ځما خواست دې چه دا ځان دپاره د خیر سبب اوګنړي او ځمونږه والله که تاسو سره ذاتی بُغض وی، مونږه چه ستاسو کتابونو کښې څه لیدلی دی هغه م رانقل کړل که څه زیاتی رانه شوی وی پکی نو مونږته اطلاع راکړی،مونږه به سره د اعتذارنامه نه د بخنی خواست اوغواړو.
خادمِ نوجوانانِ احناف عبدالرحمن عابد عفی عنه(خادم بمرکزِامامِ اعظم ابی حنیفهؒ بشاور)
0333:3300274
Hanafiyam@gmail.com

☆☆☆☆... وماعلیناالاّ البلاغ... ☆☆☆☆

## ﴿... بدعاتِ لامذهبیة...﴾

۱:**تراویح اوتهجد ته یو وئیل:** غیرمقلّدین تراویح او تهجد مونځ یو ګنړل(من کل الوجوه) د غیرمقلّدینو بدترین بدعت دې.
ورنه غیرمقلدین دې مونږته صرف اوصرف یوآیت یاصحیح صریح مرفوع علی فهم السّلف داسې حدیث پیش کړی چه په هغې کښې

تراویح او تهجد ته پکښې یو مونځ وئیلې شوې وی _ دیده باید...!

**۲:تراویح او وتر ته یو وئیل:** زبیرعلیزئی غیرمقلّد لیکی:

"تراویح،تهجد،قیام اللیل،قیام رمضان اوروترایك هی نمازکے مختلف نام هیں" (تعدادرکعات قیام رمضان کاتحقیقی جائزصفحه ۱٦)

او عبدالرؤف سندهو صاحب غیرمقلّد لیکی:

«معلوم هوا که آپ کا قیام اللیل(تهجد)رمضان میں قیامِ رمضان(تراویح)سے بدل گیا یعنی حضور جو تهجد اور وتر غیررمضان میں نیند سے اٹھ کر پڑھتے تھے ،رمضان میں وهی تهجد اور وتر تراویح کے نام سے نیند سے قبل بعد عشاء پڑھ لیتے تھے» (القول المقبول فی تخریج صلاة الرسول صفحه٦٠٧)

تنبیه: په قوسینو() کښې الفاظ خپله د دغه غیرمقلّد دی.

د غیرمقلّدینو په بله مشهوره رساله کښې قاری لیاقت علی باجوه صاحب سیالکوټی غیرمقلّد لیکی:

«بعض لوگ اعتراض کرتے هیں که اس حدیث کا تعلق تهجد کے ساتھ هے حالانکه تهجد،تراویح،قیام اللیل،قیامِ رمضان،وتر ایک هی نماز کے مختلف نام هیں» (پندره روزه صحیفه اهلحدیث کراچی،یکم رمضان،۱۸مئ۲۰۱۸ جلد۱۰۰ شماره۱۷)

حافظ عبدالرحمن منیجر رحمانی صاحب لیکی:

«جو نماز عشاء کے بعد اور فجر سے پهلے درمیانی رات میں پڑھی جاتی هے اس کے
نام بهت هیں اسے قیام اللیل وتر نفل تطوع اور تهجد وغیره ناموں سے یاد کرتے هیں» (رحمانی نماز صفحه۱۸۵)

د دی ټولو حواله جاتو خلاصه دا شوه چه دوی تراویح او وتر یو ګڼړی.

حالانکه دادعویٰ دانگریزد دورنه مخکښ چا نه ده کړې بلکه داهم د غیرمقلّدینو د بدعاتونه یوبدعت دې. ځکه چه دوی خوخپله وترو ته سنت مؤکده وائی،او د سحرمونځ د سنتو غوندې ورله حیثیت ورکوی (رسول اکرمﷺکاصحیح طریقه نماز: صفحه ٥٦٩،از رئیس ندوی غیرمقلّد)اوتراویح ددوی په نزدیونفلی مونځ دی(الحق الصریح١/٣٠٦ لامین الله البشاوری)
ددې وجې نه دغیرمقلدینو په نزد که چا تراویح هُم اونکړی نو هیڅ باك پرې نیشته ،نه دې کوی اختیار دي ورته(تذکره مولاناغلام رسول صفحه ٥٩، از مولانا اسحاق بھٹی غیرمقلّد)
نومعلومه شوه چه خپله هم عملاً دواړه مونځونه (تراویح اووتر) جُداجُداګنړی خو دوی لره بدعت داعقل ختم کړې دې ...

## ٣:بې اودسه او پلید شخص قرآن کریم لره مس کول:

دغیرمقلَدینو په نزدقرآن کریم لره مس کولو دپاره اودس پاکی شرط نه دی(نزل الابرارجلد١صفحه ٩وعرف الجادی صفحه ١٥)
ځکه چه دقرآنکریم دپاره طهارت شرط کیدل نه دی منقول(العذب الفائض لعبدالعزیزنورستانی)
ددې وجې نه دوی دعویٰ کوی چه: دحیض اونفاس په حالت کښ قرآن کریم لره مس کول په هیڅ واضح اوصریح حدیث کښ منع نه ده ثابته (صحیح نمازنبوی صفحه ٦٢مصنّفه الشیخ عبدالرحمٰن عزیز بنظرثانی ابوالحسن مبشراحمدربانی)

**٤: په یولاس سره مصافحه سنت ګنړل:** غیرمقلدین په یو لاس سره مصافحه کولو ته سنتاوداوړوته بدعت وائی العیاذ بالله...

حالانکه داهم ددوی بدعت دي، غیرمقلدین که چرې د دې
جواب کوی نودوی دي د محدّثینو ابواب او د اسمِ جنس
تعریف یادساتی چه بیاورته پریشانې مخې ته نه راځی...... !

## ۵: په قربانئ کښې غیرمسلم شریك کیدل:

دغیرمقلَدینو په بدعاتوکښې یوبدعت دا هُم دي چه دوی فتویٰ
ورکوی چه:

"باقی رهی مرزائی کی شرکت تواس کے متعلق بهی حرام
کافتویٰ نهیں لگاسکتے"(فتاوی علمائے حدیث جلد۱۳صفحه ۸۹)
ترجمه : باقی پاتې شودمرزائی شرکت (په قربانۍ کښ ،ناقل)
نوددې متعلق هم دحرامو فتویٰ نشولګولې.
او دغسې ئې په بله فتاویٰ کښې هُم درج دی:
"واضح هوکه ذبیحه اهل تشیع کاکهاناحلال هے"(فتاویٰ نذیریه
جلد۳صفحه ۳۱۷)

**٦:غیرمسلم پسې مونځ کول:**دغیرمقلدینو شیخ الاسلام ثناء
الله امرتسری صاحب غیرمقلدلیکی:
"میرامذهب اورعمل هے که هرکلمه گوکے پیچهے اقتداء
جائزهے، چاهے وه شیعه هو یامرزائی"(اخباراهلحدیث ۱۲،اپریل
۱۹۱۵ء وفتویٰ امام ربانی صفحه ۵۰)

ترجمه : زمامذهب اوعمل دادې چه هرکلمه وئیلووالاپسې(په

مونځ کښ. ناقل) اقتداء جائزده که هغه شیعه وی اوکه مرزائی
وی.

☆... دغسې مولوی عبدالعزیزصاحب غیرمقلدهم دثناء الله
امرتسری صاحب متعلق لیکی چه:

"آپ نے لاھوری مرزائیوں کے پیچھے نمازپڑھی آپ مرزائی کیوں نھیں آپ نے فتویٰ دیاکه مرزائیوں کے پیچھے نمازجائزھے (فیصله مکه صفحه ۳٦)
ترجمه : ثناء الله امرتسری لاھوری مرزائیانو(قادیانانو،ناقل) پسې مونځ کړې دې، ته ولې مرزائی نه یئ،تاخوفتویٰ ورکړې ده چه مرزایانوپسې مونځ کول جائزدی.
☆... او دغسې فتویٰ عبدالله غازی پوری غیرمقلّد هُم ورکړې ده اوګوره (مجموعه فتاویٰ عبدالله غازی پوری صفحه ۲۴)
**۷: د غیرمسلمې زنانه سره نکاح:** د غیرمقلّدینو په نزد د مرزائنړې ښځې سره نکاح کول هُم جائز دی، چنانچه ثناء الله امرتسری صاحب غیرمقلدلیکی:
"اگرعورت مرزائن ہے توعلماء کی رائے ممکن ھے مخالف هومیرےناقص علم میں نکاح جائزھے"(اخباراھلحدیث امرتسر۲نومبر۱۹۳۳،بحواله ترك تقلیدکے بھیانك نتائج صفحه ۵۴)
ترجمه : که چرې ښځه مرزائنه وی نوممکنه ده چه دعلماؤ رائے ماسره مخالف وی زمادناقص علم مطابق نکاح ورسره جائزده.
مونږته دې غیرمقلدین داسې یوآیت یاحدیث(چه کوم ددوی په نزدقابل حجت وی) پیش کړی چه غیرمسلمې ښځې سره هم نکاح جائزده ورنه دغیرمقلّدیت مذهب په بدعی کیدو باندې به هیڅ شك باقی پاتې نشی.
**۸: په عجمی ژبه کښې دجمعې خطبه :** غیرمقلّدین دجمعې په ورځ یوبدعت داهم کوی چه دوی دجمعې خطبه په غیرعربی(پښتو،اردو،فارسی وغیره) ژبه کښې وائی:

غیرمقلّدین دې داسې صرف یوآیت یاحدیث علی فهم السلف(چه کوم ددوی زبانی دعویٰ ده) پیش کړی چه په هغې کښ غیرعربی ژبه اجازت وی؟!

**٩:دچرګ قربانی جائز:** دغیرمقلّدینوپه نزد د چرګ قربانی جائزده، اصل عبارت ئې اوګورئ دغیرمقلدینومفتی عبدالستارصاحب لیکی:

"شرعًامرغ کی قربانی جائزھے" (فتاویٰ ستاریه جلددوم صفحه ٤٢)

او د غیرمقلّدینو وکیل رئیس ندوی صاحب لیکی:

«مرغا مرغی وغیره کی قربانی جائزقراردینے والے بهت پرانے زمانے سے موجود هیں» (ضمیر کا بحران صفحه٢٨٤،ناشر: جامعه سلفیه بنارس هند)

او د غیرمقلّدینو مجتهد العصر مولانا اسماعیل سلفی صاحب لیکی چه«بعض صحابه مرغی اور انڈے کی قربانی جائز جانتے تھے، محلی لابن حزم (فتاوی سلفیه صفحه١٠٨،ناشر:اسلامک پبلشنگ هاؤس لاهور)

استغفرالله...! اوس یی صحابه کرام رضی الله عنهم هُم پرینخودل.

زه خیر.... دا تپوس به ترینه بیا اوکړه چه دا خبره صحیح السند سره ذکر کړي ورنه په صحابه کرامو ؓ باندی به مو دا دروغ ویلی وی، خود دی موقعه بل ځائی ده...!

خو دومره خبره ښکاره شوه چه د غیرمقلّدینو داسی قول کول چه په چرګی باندی قربانی جائز ده، قبیح ترین بدعت دي.

**١٠:په انډې قربانی جائز :** دغیرمقلّدینوپه نزد په انډې هم قربانی کولې شی، دغیرمقلّدینو دمفتی نه یو سوال شویدي چه«مرغ اور مرغی کي انڈے کی قربانی هوسکتی هے؟

چه د چرگې په انډې باندې قرباني کيديشي
نو د غيرمقلّدينو مفتی ورله په جواب کښې وائی چه«حديث جمعه ميں آيا هے که جو شخص جمعه ميں سب سے پهلے آيا اس کو اونٹ کی قربانی کا ثواب ملے گا اور اس کے بعد آنے والے کو گائے کی قربانی کا اور جو اس کے بعد آئے اس کو بکري بھيڑے کی قربانی کا اور جو اس کے بعد آيا اس کو مرغ کی قربانی کا ثواب ملے گا اور اس کے بھی بعد آيا تو اس کو انڈے کی قربانی کا ثواب ملے گا» (فتاوی ستاريه جلد۴ص۱۴۰)
او د مولانا اسماعيل سلفی صاحب حواله تيره شوه چه هغه ليکی«بعض صحابه مرغی اور انڈے کی قربانی جائز جانتے تھے، محلی لابن حزم (فتاوی سلفيه صفحه۱۰۸،ناشر:اسلامک پبلشنگ هاؤس لاهور)
غيرمقلدين بدعتيان ددغه فتوې په دفاع کښ دحضرت بلالؓ د يو ضعيف قول نه سهارااخلی، حالانکه هغه قول دبلالؓ په صحيح السندسره ثابتول غيرمقلّدين ترينه ترقيامته پورې عاجز دی ان شآء الله......

<u>۱۱: د څلورونه زيات نکاح :</u>نواب نورالحسن خان غيرمقلّد د څلورونه زياتې په نکاح کولوئې تفصيلی بحث کړې دې چه دڅلورونه زائد نکاح کولې شی،اوګورې تفصيلاً د غيرمقلّدينو کتاب(عرف الجادی صفحه ۱۱۱،۱۱۲)
او دغسې د موصوف پلاريعنی نواب صديق حسن خان غيرمقلد هُم ددې متعلق خبره کړې ده چه دڅلورونه زياتې نکاح کولې شی (ظفرالّلاضی ص۲۹۶)
دا هم ددی بدترين بدعت دي.

**۱۲: دجمعې مونځ معاف :** نواب نورالحسن خان غیرمقلدلیکی: وبربعیدالمکان واجب نیست اگر چه نداء بشنود بنابر
مزیدمشقت دواں" (عرف الجادی ص ۴۱)
ترجمه:چه د چا کور د مسجد نه په څه فاصله کښ وی،اګر که هغه اذان اوری نو په دهٔ باندې دمشقت دوجې نه دجمعې مونځ واجب نه دې.
سبحان اللّٰه...!چه یو کس غیرمقلّد بدونِ اجتهاد مرض کښی اخته شی نو بیا داسی بدعاتو کښی ډوب شی...

**۱۳: تراویح دوه رکعاته:** امین اللّٰه پشاوری غیرمقلد وائی "تراویح دوه رکعاته هم کولې شې"(کیسټ سوال وجواب)
آخردا په کوم آیت یاحدیث پاك کښ راغلی دی....؟

**۱۴: دقربانې ورځې ۲۰ شل ورځې دی :**

مولانا بشیرسهوانی صاحب غیرمقلّد یوکتاب لیکلې دې چه دقربانې ورځې ۱۰ ذی الحجه نه واخله ترآخرذی الحجه پورې ئې ثابتې کړې دی دهغه کتاب نوم دې" ایام النحر" په اردو کښ. اوګوره:(هفت روه اهلحدیث لاهور۷مارچ ۱۹۹۷ص۲۵)

واه جی دخیټوشوقیانو! داکوم بدعت مو د خیټی د مجبوري نه جاری کړه .....؟

**۱۵:موراوپلارته زکوٰة ورکول:** نواب نورالحسن خان غیرمقلدلیکی:
"ادله عمومًا وخصوصًا باشندبجوازدفع زکوٰة بسوئے اصول وفروع"( عرف الجادی صفحه ۷۲)

**۱٦:میښنه ذبحه کول**: د غیرمقلّدینو شیخ الحدیث مولانا محمداعظم صاحب غیرمقلدلیکی:
"بعض فقهاء نے بهینس کوگائے کی هم جنس قراردیتے هوئے بهینس اوربهینسنے کی قربانی بھی جائزقراردی هے ،مگریه ایك قیاس هے ،آنحضرت ﷺ اورصحابه رضی الله عنهم اوخیرالقرون میں ثبوت نهیں ملتا"(هفت روزه اهلحدیث لاهور۲مارچ ۲۰۰۱)
ترجمه: بعضې فقهاؤ میښنه د غوا هَم جنس ګرځولې ده دمیښې(مذکراومؤنث)قربانی ئې جائز ګرځولې ده خو دا یو قیاس دې دنبیﷺ اودصحابه رضی الله عنهم او خیرالقرون په زمانه کښ ددې هیڅ ثبوت نه میلاویږی.
خپله غیرمقلّدوائی چه میښنه دخیرالقرون په زمانه کښ نه وه دا هسې قیاسی حلاله ده نوچه یوشیزپه خیرالقرون کښ نه وی،او بیا هُم د هغې اجزاؤته حلال وائی، نو دیته څه وئیلي ګیږی... ؟
☆... او توصیف الرحمن زیدی غیرمقلّد هم دی طرفته مائل دي چه د میښی قربانی جائز نه ده چه د هغه ویډیو په یوټیوب باندی کتلي شي.
☆... او د غیرمقلّدینو شیخ الحدیث و مناظر عبدالقادر حصاری صاحب لیکی:
«بهیمة الأنعام کی چار قسمیں بیان کی گئ هیں
دنبه،بکری،اونٹ،گائے، بھینس ان چار میں نهیں اور قربانی کے متعلق حکم هے بهیمة الأنعام سے هو،اس بناء پر بهینس کی قربانی جائز نهیں»(فتاوی حصاریه۵/۴۳۹)
☆... او دغسی اشاره زبیرعلیزئی غیرمقلّد هُم په خپل کتاب «مقالات»کښی کړیده چه دا د اسلافو نه ثابت نه ده. نو چه که چری اسلافو نه ثابت نه ده نو بیا دی غیرمقلّدین د بدعت تعریف اوکړی او دا خپل عمل دی پری اوتلی.....

## ۱۷:د موتې نه زائد ګیره کټ کولو ته سپک کتل:

غیرمقلدین ګیرې دومره غټې غټې پریخی دی چه خلقو لره د ګیرو پریخودونه زړۀ مړوی، العیاذبالله، لکه د بعضو تصاویر په نیټ کښې موجود دی، حالانکه د اسلافو خوعادت مبارکه دا وؤچه دوی به ګیرې دقبضې نه زائد وهله،

که د غیرمقلدینو په شان ئې داسې پرېږدې چه ورسره بد ښکاری نو بقول امرتسری صاحب غیرمقلد بیا د هغې کټ کول واجب دی، او ددې برعکس که څوک دمُټې نه زیات بدنما ګیره اووهی نوغیرمقلدین ورته ډیرپه بدنظر ګوری دومره ئې تلازم کوی نوددوی دا کار د بدعت نه څه کم نه دې...؟

**۱۸:مطلق تقلید ته ردّی بدی وئیل:** غیرمقلّدین تقلید ته شرك ورنه کم ازکِم بدعت خوورته ضروروائی لیکن خپله هم ددوی په کور کښې هُم د دوی بدعت قرارکرده مسئله(تقلید)موندلې کیږی، مثلاً امین الله پشاوری غیرمقلد لیکی چه:"مونږه هم دامام بخاری د احادیثو متبعین او مقلدین یو" (التحقیق السدیدصفحه ۸۳)

او دغسې ابوالاشبال احمدشاعف صاحب غیرمقلدلیکی:

"میں پکا مقلّدھوں کتاب وسنت کی تقلیدسے آگے نہیں پڑھتا" (مقالات شاعف صفحه ۲۸۴)

☆... اودغسې ثناءالله امرتسری صاحب لیکی چه:"تقلیدمطلق یه ھے که بغیرتعین کسی عالم سے مسئله پوچھ کرعمل کیاجائے جواھلحدیث کامذھب ھے " (فتاوی ثنائیه ۲۵۴۱۱)

په دې موضوع باندې مونږ سره کثیرتعداد کښې حواله جات شته خو دا رساله ده، ددې وجې نه په دې به اکتفاء اوکړو مزیدتفصیل د پاره

ځمونږه مضمون "تقلیدی اهلحدیث" په ماهنامه ترجمان احناف کښ مطالعه کړې.

## ۱۹:په مانځه کښې ډیر کهلاو ولاړه:

غیرمقلدین په مانځه کښ دومره کهلاؤ ولاړوی چه یوخپه ئې په مشرق کښ وی اوبل په مغرب کښې، چه په صف کښ ئې د څو کسانو ځائې نیولې وی، حالانکه دومره اَرت اودریدل په هیڅ ځائې کښې نه دی منقول دشریعت دطرفه، بلکه دا یوبدعت اوقبیح عمل دې.

## ۲۰:التزام د عملِ مستحبه وو:

امین الله پشاوری غیرمقلّد دا اصل لیکلي دې چه څوك مستحب عمل ضروراوګنړی نو دا بدعت دې(الحق الصریح جلد۴ صفحه۴۱۱)

همدغه امین الله پشاوری غیرمقلّد په یو ځائې کښې رفع الیدین ته مستحب وئیلې دی (الحق الصریح۶۶/۴)

اوس دغه مستحب عمل(بقول غیرمقلّدین)د غیرمقلّدینو شیخ الحدیث ومناظر رئیس ندوی صاحب التزام درجی ته رسولي دي، لیکی چه:

«بوقت رکوع جهکتے اور اٹھتے بهی رفع الیدین فرض و واجب هے»

بیا ورپسی لیکی چه:«بوقت رکوع رفع الیدین والا فرض بهی انجام نه دینے کے سبب سارے دیوبندیه کی نماز باطل و کالعدم هوتی هے» (مجموعه مقالات پرسلفی تحقیقی جائزه صفحه ۲۴۶)

☆... او دغسې مسعوداحمد غیرمقلّد د رفع الیدین په فرضیت ئې مستقله رساله لیکلې ده په نوم د" همارے نامورعلماء علم کی کسوٹی پررفع الیدین فرض هے، طبع کراچی"

☆... اومحمد رفیق پسروری صاحب غیر مقلد لیکی:
"رکوع میں جاتے وقت اور اٹھتے وقت رفع الیدین کا مسئله نماز کے ارکان سے تعلق رکھتا ھے ----بلکه راقم الحروف کے عقیدے کے مطابق تارك کی نماز ھی نہیں ھوتی"(فتاوی رفیقیه صفحه ۱۳۵)
☆... اومولانا امان الله عاصم غیر مقلد لیکی:
"اگر رفع الدین کے بغیر نماز پڑھے گا تواس کی نماز ھرگز قبول نه ھوگی،،(مجرم کون ص۳۸)
☆... او عبدالله روپړی صاحب غیر مقلّد لیکی:
"نه کرنے میں خطره ھے که نماز میں نقص آئے (فتاوی اهلحدیث ج۱ص ۴۶۳)

**۲۱:د تراویح لفظ:** عبدالمتین میمن جوناگړھی غیرمقلد لیکی چه:
"تراویح کالفظ رسول اللهﷺ کے زمانے میں استعمال نہیں ھوتاتھا" (حدیث خیروشر صفحه ۵۱)
یعنی د تراویحو لفظ د رسول اللهﷺ په زمانه کښی به نه استعمالیده. حالانکه غیرمقلدین ئې بیا هُم دا لفظ استعمالوی، نو غیرمقلّدین دِ لګ د بدعت تعریف اوکړی او بیا دی دلته کښی فِټ هُم کړي...

## ۲۲:لفظ الله سره ذکر کول:

د غیرمقلّدینو دا نظریه ده چه په لفظ "الله" سره ذکر کول بدعت دي، اوګورې دغیرمقلدینوکتابونه: (البنیان المرصوص صفحه ۲۴،والحق الصریح جلد۱صفحه۲۳۲و۶۵۰وغیره)
لیکن دغه لفظ" الله" دوی خپله هُم استعمالوی، او ذکرپرې کوی، بلکه نورو خلقو ته پرې تلقین هُم کوی چه" الله الله" ذکرکوې، مثلاً عبدالعظیم انصاری صاحب غیرمقلّد لیکی:

"حافظ محمدؒ کي بيټي مولانا محی الدين عبدالرحمن تهي جو مولانا محمد علیؒ کي والدگرامی تهي مولانا عبدالرحمن زيادہ ترخدا کی ياد ميں مشعول رهتے تهےبڑے عابد وزاهد بزرگ تهي حلقه ذکر ميں صرف"الله" کی آواز سے لوگ بے هوش هوجاتے"(تذکرہ علمائے بهوجيان صفحه٣٢٦)
مزيد مختصراً مندرجه ذيل کتابونه اوګوري چه په دی کښی هم لفظ الله سره ذکر موجود دي :حديث خيروشرصفحه ٤٦، تقاريروخطابات ازابوبکرغزنوی غيرمقلدصفحه ٢١، مولاناعبدالوهاب اورانکاخاندان ص ٨٦و٣٤٨، دارالحديث رحمانيه دهلی صفحات ٦٠،٦٩،١٠٦، برصغيرميں علم فقه-ازاسحاق بهٹی صفحه ٣٤١،اهلحديث اوسياست صفحه٣٠٨)

## ٢٣:مجلسِ ذکر:

غيرمقلّدين دحق پرست صوفياءکرامو مجلسِ ذکر ته هُم بدعت وائی،
ليکن خپله غيرمقلّدينو مشران د دې څيز ښه کلك قائلين وعاملين وؤ، مثلاً عبدالحفيظ صاحب غيرمقلّدليکی چه:
"احباب جانتے هيں که حضرت مولانا سيدابوبکرغزنویؒ کے هاں هرجمعرات"مجلسِ ذکر" منعقدهوتی تهی"(تقاريروخطابات صفحه ٥٢)
اوس به کتلې شی چه غيرمقلّدين په خپلو مشرانو فتوې لګوی اوکنه د شعيب عليه السّلام دقوم سنت ژوندی کوی او ناانصافی نه به کار اخلی !!

## ٢٤:سرتور سر مونځ کول سنت ګنړل:

غيرمقلّدين بغير دټوپۍ نه مونځ بلاکراهت جائزګنړی بلکه سنت هُم ورته وائی(رحمت کائنات صفحه ٢٢)

بلکه د غیرمقلّدینو شیخ التفسیر مفتی عبدالرحمن صاحب غیرمقلّد پی
مستقل په سنتیت باندی کتاب لیکلي دي، په نوم د «کون کهتا هے که
ننگے سر نماز نهیں هوتی»
حالانکه دا دومره شنیع کار دې چه خپله د غیرمقلّدینو بعض مشرانو
هم په دې ګویا شوې دی چه سرتورسر د کفارو تقلید دې، اوګوره
دامین اللّٰه پشاوری غیرمقلد کتاب فتاویٰ الدین الخالص جلد۱ صفحه
۳۰۱ پشتو

## ۲۵: د رومال دواړه طرفونه زوړند ساتل(سدل):

اکثر غیرمقلّدین بغیر ټوپئ نه رومال په سراچوی او د رومالونو
طرفونه زوړندوی اومونځ کوی.
حالانکه دا هُم قبیح بدعت دې بلکه په حدیث پاك کښی
منع هُم پرې راغلې ده(ترمذی)

## ۲۶: غیرعربی ژبه کښی د جمعی خطبه وئیل:

غیرمقلّدین په خطبو کښی غیر عربی ژبه کښی خطبه وائی حالانکه
د نبی علیه السّلام په دور کښ عربونه علاوه عجم خلق هم وؤ، پکاروه چه
نبی علیه السّلام د دې خبرې وضاحت کړې ووچه خطبه د عربی ژبئ نه
علاوه بله ژبه کښ وئیل هم جائز دي!!
امام نوویؒ(المتوفّی:٦٧٦ھ) فرمائی چه خطبه خاص په عربی ژبه
کښ ضروری ده (ویشترط کونها بالعربیه) (کتاب الاذکارص ۱۰۲)
☆...او شاه ولی اللّٰہؒ(المتوفّی:١١٧٦ھ)هُم دا د متّفَق مسلمانانو عمل
ئې خودلې دې، اوعمده بحث پرې ئې کړې دې اوګوره:(شرح مؤطاامام
مالك جلد۱ صفحه ۱۵۴)
☆... او د غیرمقلّدینو ممدوح علاّمه عبدالحیؒ فرمائی چه بغیر د
عربی ژبی نه بل ژبه کښی خطبه وئیل مکروه تحریمی ده (عمدة الرعایه
شرح وقایه ۱۲۰ صفحه ۲۰۰)

## ۲۷:اُصول او فروع:

غیرمقلّدین مسائل"اصول وفروع" تقسیمولو ته بدعت وائی، لکه امین الله پشاوری غیرمقلّد لیکی:
«د دین مسائل تقسیمول فروعی او اصولی مسئلی ته **بدعت** دي» (التحقیق السدید ص:۴٦)
خو د دی برعکس همدغه(بقولِ غیرمقلّدینو) بدعت نه بیا هُم دغیرمقلّدینو کور خالی نه دي،
چنانچه مولانا محمدشاهجهانپوری صاحب غیرمقلّد د یو کس متعلّق لیکی:
تمام طریقوں اور ذوقوں کوچھوڑ کراحادیث رسول اللهﷺ کي اور جوآپ
کی چال ڈھال کتب احادیث میں مروی ھے اس کي تابع ھوگئ-اصول و فروع ھردو میں حدیث کے ھورھي«ھے"
(الارشاد الی سبیل الرشاد ص:۳۸۴،۳۸۳)
ددی قول نه خو دا هم معلومه شوه چی غیرمقلّدین په حدیث کښی هم اُصول او فروع تقسیم کوی او منی ئی.
لیکن خپله هم دغه مرض کښې لګیادي، اومحتاجه دي ورته،
☆... ابوالاشبال احمدشاغف صاحب غیرمقلد لیکی:
"اس مجدّدوقت نے اصول وفروع پرمختلف تصانیف کاذخیره همارے سامنے
چھوڑاھے" (مقالات شاغف صفحه ۱۸۹)
ترجمه: دي مجدّدوقت(ابن حزم) اصول وفروع باندي مختلف تصانیف ذخیره څمونږه مخې ته پریخیدی.
☆... اسماعیل سلفی صاحب غیرمقلّد لیکی:

"اصول فروع،فرائض،نوافل سنن اورواجبات سب کودین کاجزوسمجهتے هیں"(مقالات حدیث صفحه ۹۴)
اوګوري! یوځائې کښې ورته یو غیرمقلد بدعت وائی اوبل ځائې کښې بل غیرمقلّد د دین حصه ئې ګڼړی (!!)
**۲۸.ابتداء بالتلاوت:** غیرمقلّدین وائی چه ابتداء په تلاوت سره په احادیثو کښې ددی وجود نشته، بلکه دا بدعت دي. اوحال دادې چه هم ددوی په عملی زندګی په خپلو سترګو مونږه ډیر داسې مجالس لیدلې دې چه دوی پکښې ابتداءبالتلاوت کړې دې، خوکتابی حواله هُم ملاحظه کړې، چنانچه محمدرمضان یوسف سلفی صاحب غیرمقلدلیکی:
"قبل ازتقریرتلاوت کلام پاك کاهوناضروری تها"( مولاناعبدالوهاب اورانکاخاندان صفحه ۱۴۴)
ترجمه : دتقریرنه مخکښ دکلام پاك تلاوت ضروری وؤ--
☆... اوپه بل کتاب کښې درج دی:
"ایك قاری نے اپنی قراءت سےجلسے کی ابتداء کا اعلان کردي"
(دارالحدیث رحمانیه دهلی ص ۱۰۷ ازمولانااسعداعظمی)
ترجمه : یوقاری(غیرمقلّد،ناقل) په جلسه کښ دخپل قراءت سره دجلسې ابتداءاعلان اوکړو
☆... او دغسې په بله رساله کښې دی چه:
"پروګرام کا رات ۹ بجے حافظ عبدالمتین کی تلاوت کلام پاك سے هوا" (هفت روزه اهلحدیث صفحه ۱۶،۴۱اکتوبر۲۰۰۵)
☆... اوبله رساله کښې هُم دې چه:

"نمازظھرکے بعدجامع کی مسجدمیں قاری محمدریاض صاحب کی تلاوت سے تقریب کا آغازھوا" (ھفت روزہ الاعتصام جلد٦٧ شمارہ ٢٥ صفحہ ٣٠)

## ٢٩:سلفي يا اثري وغيره نوم:

غيرمقلّدين نن صباځېل نوم سره "سلفي" يا "اثري" وغيره ليكي، چه داسې نسبت نه خو الله پرې امر کړيدي، او نه محمدرسول اللهﷺ پرې امرکړې دې، اوڼۀ ئې څرته استعمال کړې دې، فلهذا دا عادت هُم د غيرمقلدينو د اُصولو مطابق بدعت دې .

**٣٠:تعويذ:** غيرمقلدين مطلقًا تعويذ ته هُم بدعت وائي-- همدغه ددوی د قول مطابق "بدعت" هُم ددوی په کور کښې هم موندلي کيږی،چنانچه محمدرمضان يوسف سلفي صاحب غيرمقلد ليکي:

"مولانابھی اورمولاناکے چھوٹے بھائی مولاناعبدالقھار اور بھت سے جماعتی وغیرہ جماعتی علماء شرعی تعویزات کے قائل ھیں"
(مولاناعبدالوھاب اوران کاخاندان صفحہ ٣٠١)

ترجمه: مولانا هُماو د مولانا كشررور مولانا عبدالقهار اوډيرجماعتي وعيرجماعتي علماء(يعنی جماعت غرباء اهلحديث،ناقل) دشرعي تعويزاتو قائل دی

☆... او دغسې د غيرمقلدينو شيخ الكل في الكل نذيرحسين دهلوی صاحب هُم دوی دجواز قائل دی، چنانچه د يو سوال په جواب کښې ليکي:

"تعویزلکھ کرگلے میں ڈالناجائزھے کوئی حرج نھیں ھے"
(فتاوی نذیریہ جلدسوم صفحہ ٢٩٧)

يعنی تعويز په ليکلو او په غاړه کښې اچول جائز دی هيڅ حرج پکښې نشته.

او د غیرمقلدینو مجدّدِ وقت نواب صدیق حسن خان مستقل کتاب پرې لیکلې دې په نوم د "کتاب التعویزات"چه د دې نه به
صرف یوحواله رانقل کړو، بتوفیق الله تعالی، نواب صاحب لیکی
"جس عورت کو دردزه هوتوپرچه کاغذمیں یه آیت لکھے "والقت مافیها وتخلّت واذنت لربّها وحقّت اهیا شراهیا" اوراس پرچه کوپاك کپڑے میں لپیٹے اوراس کی بائیں ران میں باندھے تووه جلدجنے گی"(کتاب التعویزات ص۱۱۳)
ترجمه: کومې ښځې ته چه د ماشوم درد وی نو په پرچه باندې دې داآیت اولیکی"والقت مافیها وتخلّت واذنت لربّها وحقّت اهیا شراهیا"او دغه پرچه په پاك کپړه کښې اونغاړی او د هغې په ګس پتون باندې دی اوتړې، نو هغه به زرماشوم اوځګوی.
او دغسې دغیرمقلّدینو په دې موضوع باندې متعدد حواله جات مونږ سره شته خو په دې به اکتفاء اوکړو، لکه مشهور غیرمقلّدطالب الرّحمٰن د تعویذ په موضوع باندې مستقل کتاب لیکلې دې په نوم د "تعویذ کی شرعی حیثیت"او دغسې بل کتاب ئې په دې نوم شائع کړې"روائیدادِ مناظره تعویذ"

## ۳۱.:د بخاری شریف راویانو باندی جرحه کول:

غیرمقلّدین عمومًا دا دهوکه ورکوی چه بخاری شریف باندې صرف مونږه عاملین وقائلین یو، اوبخاری زمونږه دې. اوپه دومره مدحه کښې ئې لیکلې دی چه ثوك دبخاری شریف په راویانو باندې جرحه وتنقید اوکړی نودې بدعتی دې مثلاً:
مشهورکذّاب زبیرعلی زئی غیرمقلدبدعتی لیکی چه:
"مگرکسے معلوم تهاکه ایك دورآنے والاهے جب مسلمانوں کی راه کے خلاف چلنے والے بدعتی صحیحین(بخاری ومسلم) کی احادیث اور راویوں پر

اندھا دھندحمله کریں گے"(نورالعنین صفحه ۳۲)
ترجمه: خو چاته پته وه چه داسې دوربه راځی چه د مسلمانانوپه لاره باندې د تلونکو خلاف بدعتیان به د صحیحین(بخاری ومسلم) په احادیثو او روایانو باندې به حملې کوی.
حالانکه غیرمقلّدینوخپله دبخاری شریف په راویانوباندې دومره جرحې کړې دی بلکه په خپله صاحب کتاب یعنی امام بخاریؒ باندې هغه نارواجرحې وتنقیدات کړې دی چه الامن والحفیظ---
خیر---! د رِجال البخاری متعلق دغیرمقلدینو د کورنه یو څو جرحې ملاحظه کړې اوبیا دې غیرمقلّدین دغه خپل اصل په ذهن کښې یادساتي چه بخاری شریف په راویانوباندې چه څوك جرحه کوی نودې بدعتی دې، اوبیا دې خپله فیصله اوکړی چه غیرمقلدین بدعتیان دی کنه-- ؟دبخاری شریف جلدثانی کتاب المغازی حدیث نمبر۱،محمدبن اسحاق بن یسارالمدنی پکښې راوی دې :
ددې متعلق مشهورغیرمقلّدفیض عالم صدّیقی غیرمقلدلیکی:
"ابن اسحاق وه ذات شریف هوئے هیں جن کے متعلق امام مالك کهتے هیں
که دجال من الدجاجلة وه دجالوں میں سے ایك دجّال تها ،سلیمان التیمی یحیٰی بن سعیدالقطان اوروهب بن خالداسے کذّاب کهتے هیں اکثرآئمه حدیث نے اسے ناقابل حجت قراردیاهے" (صدیقه کائنات صفحه ۱۱۴)
ترجمه: ابن اسحاق هغه ذات شریف دې چه دکوم متعلق امام مالك فرمائی چه دجّال من الدّجاجلةچه هغه په دجالوکښې یو

دجّال وؤ، سلیمان التیمی یحیٰی به سعیدالقطّان اووهب بن خالد(رحمهم اللّٰه) دیته دروغژن وائی اکثرآئمه د حدیثو دائې ناقابل حجت ګنړلې دې.

☆... دغسې بل مشهورغیرمقلّد امین اللّٰه غیرمقلد وائی چه محمدبن اسحاق په باب داحادیثو کښې ضعیف دې (بخاری شریف درس صوتاً، کتاب المغازی ۲۵تا۲٦منټ دوران)

☆... او بل د بخاری شریف مشهورراوی"ابن شهاب الزهری"متعلق هم فیض عالم صدیقی صاحب غیرمقلّد لیکی:

"ابن شهاب منافقین وکذابین کےدانستهً نه سهی نادانستهً هی سهی مستقل ایجنٹ تھے اکثرگمراہ کن خبیث اورمکذوبه روایتیں انهیں کی طرف منسوب هیں" (صدیقه کائنات صفحه ۱۱۴)

ترجمه: ابن شهاب دمنافقینو اوکذابینو دانستهً(په پوهه سره،ناقل)نه سهی،په ناپوهئ سره ئې مستقل ایجنټ وو.اکثرګمراه کن،خبیث اومکذوبه روایات دهٔطرفته منسوب دی.

☆... دبخاری شریف بل راوی"علی بن الجعد" دې.

زمونږه د شل رکعاتو تراویحوپه دلائل کښې یوحدیث دې چه په هغې کښې دغه مذکور راوی دې، نو د دې وجې نه اکثرغیرمقلّدین په دهٔ باندې سخته جرحه وتنقید پرې کوی اوګورې دغیرمقلدینوکتابونه، (تعدادرکعات قیام رمضان کاتحقیقی جائزه صفحه ۷۷ اززبیرعلی زئې وغیره)

☆... دغسې بل راوی دصحیحینو"عاصم بن کلیب" دې چه په دې هم غیرمقلدینو تبّرابازیانې کړې دی ،چنانچه رئیس ندوی غیرمقلد د ترکِ رفع الیدین حدیث نه قبلولو وجه بنائی لیکی:

"اس حدیث کادارومداربھی عاصم بن کلیب پرھے جن کاساقط الاعتبارھوناواضح کیاجاچکاھے" (مجموعه مقالات پرسلفی تحقیقی جائزه صفحه ۵۸۵)

اودغسې حکیم محمودسلفی صاحب غیرمقلّد د موصوف متعلق لیکی چه:

"مگراس حدیث میں عاصم بن کلیب ضعیف ھے" (شمس الضحٰی صفحه ۱۱۱)

☆... او بل راوی د بخاری شریف"بقیة بن الولید" دې، چه ددې متعلق زبیرعلی زئې غیرمقلد لیکی:

"البخاری استشهدبه فی صحیحه " صحیح بخاری ۷۰۷ (مقالات جلد۲صفحه ۱۷۵)

یعنی امام بخاریؒ د بقیة بن الولید روایت په طور د استشهاد په صحیح بخاری کښ راوړیدې.

او دغسې ارشادالحق اثری غیرمقلدلیکی چه:

"بقیة صحیح مسلم کے راوی ھیں (توضیح الکلام ۲۹٦\۱)

نو اوس په دغه راوی باندې دغیرمقلدینو جرحې اوګورې:

محمدافضل اثری غیرمقلد"یقیة بن الولید" ضعیف ثابتولو په کوشش کښ ئې درې۳ صفحې تورې کړېدی بیاپه آخره کښې لیکی چه:

"بقیه کی عدالت ساقط الاعتبارھے اوریه ضعیف ھے جیساکه آئمه جرح وتعدیل کے حواله سے گزرچکا"( ضمیمه هدیة المسلمین صفحه ۱۰۳)

☆... عبدالله روپړی صاحب غیرمقلّدلیکی:

"سندمیں بقیه بن ولید ھے جس میں کلام ھے"(فتاوی اهلحدیث ج۱ص ۲٦۱)

ددې حوالو خلاصه داشوه چه "بقية بن الوليد" ضعيف دې، فلهذا اوس دې غيرمقلدين خپل اصل ياد کړی او د خپل اصل په " ائينه "کښې دې خپل مخ ضروراوګوری چه د"بدعت" ټاپه په غيرمقلدينو څومره ښائسته اوبرابرلګی، تاسوخپله فيصله اوکړې...! هم اگرعرض کرينگے توشکايت هوگی

## ۳۲:اذان کښې زيادت کول:

مشهورغيرمقلّد وحيدالزمان(چه غيرمقلدين ورته امام اهلحديث وائی(مجموعه مقالات پرسلفی تحقيقی جائزه صفحه ۹۴۴)
په خپل کتاب کښ ليکی چه:
"ايك رافضی اذان ميں كهنے لگا أشهدان عليًاولی الله بعضے لوگوں نے اس پرفسادکرناچاهاميں نے يه كهاكه تم اس كلمه پركيوں ناراض هوتے هوميں تو اس سے بڑھ كركهتاهوں أشهدان عليًاامام الاولياء هرچندآذان ميں يه كلمه آنحضرتﷺسے ماثورنهيں اس وجه سے بدعت هوگاليكن فی نفسه اس كامضمون صحيح هے كه جب كوئی يه كهے أشهدان علياولی الله توهم كهيں گے صدقت وبررت بل هوامام الاولياء وقدوة الاصفياء واميرالمؤمنين رضی الله عنه" (تيسيرالباری جلد۴صفحه ۳۷)

ترجمه: يورافصی(شيعه) په اذان کښ اووئيلې چه أشهدان عليًاولی الله نوبعضې خلقوپه دې باندې فسادکول غوښتل نومادا اوئيل چه تاسوپه دې کلمې ولې ناراضه کيږې زۀ خوددينه هم زيات وائم چه أشهدان عليًاامام الاولياء دغه کلمه دحضورﷺ نه نقل خونه ده، د دې وجې نه بدعت دې، خو فی نفسه ددې مضمون صحيح دې چه څوک داسې اووائی چه أشهدان علياولی

